# د مولانا عبدالقدوس قاسمي د مقدمهٔ خیرالبیان تنقیدی جاج

محمد بلال*

روحینه نجات†

Abstract

Khair ul Bayan is a historical book of Pashto literature written by Bayazid Ansari, also known by Pir Rokhan and Pir Tarik. Due to his special Spiritual thoughts, he became very controversial among other conventional schools and attracted severe criticism. By that very reason his literature disappeared from the literary landscape of the subcontinent. After a long search and struggle, Khair ul Bayn was found by Maulana Abdul Qadir in Tubingen University, Germany and published by Pashto Academy Peshawar with its foreword by Maulana Abdul Qaddus Qasmi.

This foreword offers insights into the scholarly worth of this much structured, though naïvely, spiritual master. It has settled the dust of skepticism and misconceptions that kept the illuminous face of Bayazid obscured for a long time.

This is a sincere effort to objectively conduct a thorough investigation into those misconceptions and skepticism highlighted in the foreword.

تنقید د تحقیق ورمبۍ پوړۍ ده او د ژوند پهٔ هر میدان کښې د پرمختګ بنیادي وسیله ده. کهٔ چرې د تنقید ماده د ژوند او ادب نه حذف کړے شي نوهېڅ به هم پاتي نهٔ شي، یعنې چې پهٔ کوم ځاے کښې او څنګ انسان پیدا شوے، هم هغلته به پاتي ؤ. د ازل نه راوخله تر وسه پورې چې انسان کومه ترقي او مزل کړے دے او کوي روان دے، هم دا ټول د تنقید برکت دے. دې برکت ته ارواښاد سردار حبیب الرحمان داسې اشاره کړې:

"د تنقید یا د جاج له برکته بني آدم تش دې ځائے ته نهٔ دے رسېدلے بلکه لا پهٔ مخ روان دے او خپله څپلۍ ئې، سپوږمۍ او مریخ ته غوزار کړې ده."[1]

تحقیق او تنقید د یو بل سره تړلي دي، که یو طرف ته تحقیق د ډېرو باریک بینیانو او دقیق لټون نه پس د یو مسئلې یا موضوع متعلق د نوې او قدرې درست معلوماتو وړاندې کولو نوم دے نو بل طرف ته تنقید د دغه معلوماتو د غیر جانبداره جاج او ستائېنې نوم دے چې د دې پهٔ مرسته د دغه وړاندې شوي کار او طریقهٔ کار پهٔ جدید اصولو جائزه واغستلے شي او د دغه شوي کار هغه فني اړخونه چې د کومو د بهترۍ او ستائېنې ضرورت دے وړاندې کړے شي. تنقید صرف د ادیب یا د فن پارې پهٔ خامیانو پسې د لیتکي رناکولو نوم نهٔ دے بلکې تنقیدیو فن پارې ته د رسېدو د پاره د پوهې لار ښکارکوي چې د هغې پهٔ مرسته د ډېرو ادبي

* M.Phil Scholar Department of Pashto University of Malakand
† M.Phil Scholar Department of Pashto University of Malakand

سوالونو زړۀ پورې جوابونه کېږي.تنقيد د عربۍ ژبې ټکے دے، چې لغوي معنا ئې کره کوټه معلومول دي او پۀ ادب کښې دا ټکے د انګريزۍ ژبې د کرټسزم مترادف دے.[2]

دنورو ژبو د ادب پۀ شان د پښتو ژبې ادب هم د تنقيد پۀ بنياد وده کړې او لا روانه ده کوې. د پټې خزانې د رواياتو تر مخه خو د پښتو ادب تاريخ ډېر زوړ دے خو ولې د اثارو د نښت والي پۀ وجه پۀ يقين سره دا نۀ شي وئيلے چې څومره زوړ دے؟ که پۀ دې حواله وګورو نو د "تذکرۀ اولياء" چې د سلېمان ماکو(۶۱۲ھ) تاليف دے[3]، څو پاڼې عبدالحی حبيبي موندلې دي[4]. د دې څو پاڼو نه علاوه تر(۹۰۰ھ)خواوشا پورې د پښتو ادب زمکه شړه وه. د ادب د زمکې دا شړوالے هم پۀ دغه دوره کښې يو نابغه شخصيت بايزيد انصاري بن عبدالله قاضي بن شيخ محمد(۹۳۱ھ)[5] د خيرالبيان ااو د نورو ډېرو مهم اثارو پۀ کروندہ ختم کړے، د بايزيد انصاري دغه تمام اثارخصوصاًخيرالبيان چې ډېر مهم کتاب ؤ ،تر ډېر وخته پورې د پوره بره صغير نه داسې ورک کړے شو لکه د پښتنو امن. د ډېر زيار او تړو نه بعد خو دا کتاب د جرمني د ټيوبنګن يونيورسټۍ د لائبرېرۍ نه د ډاکټر کريمر او ډاکټر پيرټ پۀ مرسته د مولاناعبدلقادر د زړۀ پورې زياراو لټون نه بعد د هغه پۀ لاس نړۍ ته رابنکاره شو[6]، خو د پښتنو امن لا هغسې ورک پټ دے.او خدا ے خبر چې دا به کله او د چا پۀ زيار راپېدا کېږي؟خيرالبيان د بايزيد انصاري يو داسې تصنيف دے چې پۀ پوره پښتون نړۍ کښې ئې داسې انقلاب راوستے چې د هغې اندازه لګول که ناممکنه نۀ دۀ، نو مشکله ضرور ده.لنډه دا چې دې کتاب د دين د تبليغ سره سره د پښتو ادب د پرمختګ دپاره هم داسې لار ويستې لکه د شېر شاه سوري جرنېلې سړک. بايزيد انصاري پۀ پښتنو کښې ومړمبے سړے ؤ چې هغۀ پۀ داسې وخت کښې کتابونه تحريره ول چې پۀ هغه وخت کښې د معلوم تاريخ تر مخه پښتون قام د ليک لوست نه ډېر نا بلده ؤ.او بله دا چې بايزيد نۀ صرف کتابونه تحريره ول بلکې پۀ تحريري ډول ئې د وخت واکدارانو ته هم استول.دا هغه مقام دے چې د دې نه د بايزيد د علميت او پوهې اندازه کېدے شي.پۀ ژوندي قامونو کښې داسې خلقوته اولس، اداب پالان او اتلان وائې او زمونږ پۀ شان بغضي او تنګ نظره اولس ورته ګمراهان اوکافران.

خيرالبيان پۀ ډېرو حوالو سره ځانګړتيا لري، هغه حواله که د تصنيف او تاليف ده او که د تبليغ او تنقيد.کۀ د پښتو پۀ معلوم نثري ادب کښې د خيرالبيان مصنف ته د ومړمبي اديب او اخون درويزه ته د خيرالبيان پۀ مقابل د "مخزن الاسلام" د ليکلو پۀ بنياد د ومړمبي نقاد درجه ورکړے شي نو زياته به نۀ وي.که هر څو مخزن اخون درويزه د خپلې وينا تر مخه د خيرالبيان پۀ رد کښې تاليف کړے خو د يار محمد مغموم د وينا تر مخه د دغه مخزن د ليکلو سهره هم د بايزيد پۀ سر ده[7].ځکه که بايزيد خيرالبيان نۀ وے ليکلے نو درويزه به مخزن د کومې ليکو ؟

خيرالبيان بايزيد پۀ ۹۲۸ھ کښې تاليف کړے او کومه نسخه چې د ټيوبنګن يونورسټۍ نه ترلاسه شوې د هغې کتابت فقير بهادر خان پۀ ۱۰۲۱ ھ کښې کړے دے[8].

او دغه د فقیر بهادر خان کاتب نسخه پهٔ رومبي ځل پښتو اکېډمۍ پهٔ کال ۱۹۲۸ء او دوېم ځل ۱۹۸۸ء کښې د صوبائي حکومت پهٔ مرسته د پروفیسر عبدالقدوس قاسمي د ۹۳ صفحو پهٔ ضخیمه مقدمه بیا د پښتو اکېډمۍ د طرف نه شائع کړو.

دا یو داسې جامع مقدمه ده چې پهٔ دې کښې د بایزید د ژوند او مبارزې داسې احاطه شوې ،چې د روښاني ادب او تحریک محققینو او متجسسینو ته ډېر څه واضحه کوي او د تحقیق او جستجو دپار ورته نور هم ډېر څه وړاندې کوي. د خیرالبیان پهٔ مقدمه کښې مصنف ډېره خوارې او محنت کړے او پهٔ دې چې مصنف پهٔ کوم وخت کښې کار او زیار کړے هغه د قدر وړ دے. خو ولې بیا هم دا خبره پته نهٔ ده چې تحقیق یو ډېر لوے میدان دے او بیا هر تحقیق حتمي هم نهٔ وي بلکې د پرمختګ او نور تحقیق د پاره د مظبوط پل بنیاد جوړېږي. دغه شان د خیرالبیان مقدمه هم ده چې د روښاني ادب د تحقیق دپاره مآخذ دے خو د دې باوجود پهٔ دې مقدمه کښې داسې ډېر څه موجود دي چې بحث ته اړتیا لري.

هسې خودعبدالقدوس قاسمي صیب مقدمه د شروع نه ډېره دلچسپه ده. خو د پښتنو د تاریخ چې پهٔ کوم طنزیه ډول احاطه کوې نو داسې درشن ورکوي چې ګنې زهٔ پکښې شمېر نهٔ یم، هغهٔ داسې لیکي:

"پښتانه وائي چې پښتون قوم ډېر زوړ او اوږد تاریخ لري او د پښتو د ادب سلسله د زرګونو کلونو راسې شروع ده خو د دې تاریخ کړئ د مبنځ نه داسې ورکې دي چې اول سر ته د اخري ټوټې سره پیوند کول ډېر ګران شوي دي"[9]

د قاسمي صیب دا جمله چې" پښتانه وائي چې پښتون قوم ډېر زوړ او اوږد تاریخ لري " پهٔ خپل ځان کښې ډېر غټ مفهوم خوندي کوي. پهٔ دې کښې هغهٔ د قام پهٔ بې علمۍ او غیر سنجیدګۍ ماتم کوي. چې دا قوم خو پهٔ دې ویاړن دے چې مونږ پهٔ مخ د زمکه ډېر زاړه یو خوحقیقت ئې دا دے چې هېڅ رقم زوړوالے نهٔ لري.ځکه چې پهٔ تاریخ کښې داسې دعوه د څه بغیر دستاوېزي ثبوتونو نه د اعتبار قابل نهٔ وي. او د دې حېثیت محض د افسانې نه بېرته هېڅ نهٔ وي.دلته د دې خبرې مطلب هر ګز دا نهٔ دے چې ګنې پښتون قوم پهٔ رښتیا زوړ نهٔ دے. پهٔ مخ د زمکه چې پېدا دے نسب او تاریخ به خامخا لري خو د نورو قومونو پهٔ شان محفوظ او دستاویزي نهٔ .دلته دغه بنیادي نکته ده، چې قاسمي صیب بیان کړې. قومونه پهٔ تاریخ پېژندل شي او د دې د ټولو نه غټ مثال پهٔ دې خاوره پاتې شوے فرنګي استعمار دے چې هغهٔ د دې ځائے خپل تاریخ د رښتیا او دروغو نه قطع نظر داسې محفوظ کړے چې د خپل تاریخي حېثیت معلومولو دپاره ټول وطن او پهٔ تېره تېره پښتون قوم وس هم هغوي ته رجوع کوي.

قاسمي صیب که یو طرف ته د پښتون قوم پهٔ دغه کمزورۍ نیوکهٔ کوي چې دا قوم خپل تاریخ پهٔ څرګه نهٔ لګوي نو بل طرف ته د هغه مخلصینو هم هغه شان ستائېنه او ډاډګېرنه، نهٔ کوي دکومې چې هغهٔ حقدار دي. بلکې اپوټه پهٔ هغوي هم د طنز غشي وره وي لکه د حبیبي صیب پهٔ حواله هغهٔ داسې وائي:

"دحبيبي صېب پۀ شان يو ځو ناکامي فاضلان ډېر پۀ زړۀ چاودون لړي لړي کړی رابرڅېره کوي. او لړي نه ئي د پښتو ادب مشتاقانو ته ځله وي ځو بويه چي ملبه به کله اوچتېږي او د دې لاندې نه به د تاريخ واضح ليک راڅرګندېږي" [10]

که حبيبي صېب پۀ هر ځومره زړۀ چاودون دا لړي لړي کړی رابرڅېره کړې او لوستونکو ته ئي وړاندې کړې نو دا کومه بده خبره نۀ ده بلکې دا د فخر او وياړ خبره ده چې پۀ دې قوم کښې هم داسې دړد لرونکي موجود دي چې د خپل تاريخ او حېثيت د لټون د پاره هسې کوي، نو پۀ دې خاطر دا ناکام هرګز نۀ دے ،بلکه کامياب ترين فاضل دے.

دا بحث د مقدمې د تمهيد پۀ اړه ؤ. وس رازو د مقدمې اصل موضوع طرف ته چې بايزيد انصاري دے.قاسمي صېب د بايزيد انصاري بن عبدالله د پېدائښ کال( ۹۳۱ه)[11] ليکلي خو بعضې ليکوالانو مثلا اروابناد محمد نواز طاهر پۀ "روهي ادب" کښې[12] اومياں بهادر شاه ظفر کاکاخيل "پشتون تاريخ کے آئينے ميں" کښې (۹۳۲ه) ليکلے دے [13]. خو زياتره محققينو دغه رائې غوره کړې کومه چې قاسمي صېب نقل کړې ده. د بايزيد د پلار شېخ عبدالله دوه ښځې وې، د يوې نوم بي بي امينه او دبلې نوم فاطمه ؤ. بي بي امينه د شېخ عبدالله د ورور کونډه وه چې د هغۀ د مرګ نه پس عبدالله پۀ جالندر کښې پۀ نکاح واخيسته[14]. خو دلته قاسيمي صېب د شېخ عبدالله د ورور نوم نۀ ذکر کوي چې د شېخ عبدالله دغه ورور څه نومېده؟ دا صرف دے نۀ بلکه د "روښانيان او پښتو ادب" مصنف هم دا خبره داسې کوي[15] لکه څنګه چې عبدالقدوس صېب ذکر کړې ده. که هر څه وي خود شېخ عبدالله د ځوي "بايزيد انصاري" د امينې د بطن نۀ دے او پۀ دې کښې د کوم يو محقق هم اختلاف نشته. د بايزيد نه علاوه هم د عبدالله يوبل ځوے ؤ چې هغۀ د بلې ښځې فاطمې نه ؤ، چې نوم ئې يعقوب ؤ. د بايزيد د مور امينې سره د شېخ تعلق پۀ دې خبره خراب شو چې عبدالله پۀ جالندر کښې نۀ اوسيدو او امينه پۀ کاني ګرم کښې د بن سره پۀ اوسيدو خوشحاله نۀ وه نو پۀ دې وجه د عبدالله او د بايزيد د مور پۀ مېنځ کښې بيلتون راغے او بايزيد تري عبدالله د ځان سره پۀ کاني ګرم کښې ايسار کړو. د شېخ عبدالله او د امينې پۀ مېنځ کښې د بيلتون دا قيصه قاسمي صېب داسې نقل کوي:

"د دوؤ بنو ګزران پۀ خپلو کښې سره ډېر ګران وي. د قاضي عبدالله د پاره د بل تېر راتلل يو ناګهاني حادثه وه. دۀ د بي بي امينې د پاره د فاطمې سره خپل جوړ هم نۀ شو خرابه ولے. او بي بي امينه هم د فاطمې پۀ مشرۍ کښې ژوند تېرؤلو ته تياره نۀ وه. چې د لارو حالت لړ سم شو. نو بي بي امينې د قاضي عبدالله نه ځان خلاص کړو او خپلي پلار ګنۍ ته(جالندر ته) راغله او د رواج او د شرعي مطابق بايزيد د پلار پۀ تربيت کښې پاتې شو"[16].

قاسمي صېب دوېنا مطابق چې "د رواج او د شرعي مطابق بايزيد د پلار پۀ تربيت کښې پاتې شو" دا خبر د شرعې پۀ حواله درسته نۀ ده. ځکه چې پۀ شرعي توګه به هلک د اووه کالو او جينۍ تر نهو کالو پورې د مور د تربيت لاندې وي[17]. خودلته بايزيد انصاري د ۹۳۱ د حسابه پۀ ۹۳۷ کښې د شپږو کالو او د ۹۳۲ د حسابه د پينځو کالو پۀ عمر کښې پۀ خپل تربيت کښې واغيستو، چې يو غېر شرعي عمل دے. خو بعضې علماء د

شپږو کالو نه وړاندې هم د بچي د ایسارولو اجازه ورکوي، خو پۀ دې شرط چې د بچي د ضائع کېدو خطره وي، پۀ دې صورت کښې به هم دا فېصله فریقېن نۀ بلکه شرعي قاضي کوي. خو که د بایزید انصاري د مور د طرف نه د نېکنې اندازه ولګو، نو هغۀ هم علمي کورنۍ وه، نو د بایزید تربیت هلته هم پۀ ښۀ ډول کېدے شو، خو شیخ عبدالله داسې ونۀ کړل او بایزید ئې د ځان سره ایسار کړو، خو د هغې باوجود ئې د هغۀ تربیت هغه شان ونۀ کړو د کوم دپاره چې قاضي عبدالله د غیر شرعي عمل نه هم تېر شو. د عبدالله پۀ موجودګۍ کښې د هغۀ سره مېرې مور داسې څه وکړل چې هغۀ د پلار نه هم زړۀ بدے شو. نو دلته د قاسمي صېب د شرعي دا خبره درسته نۀ ښکاري البته د رواج او د هندکو پښتو د وجې وئیلے شو.

ځنګه چې د هر پلار دا کوښښ وي چې خپل اولاد له د ښۀ تربیت او تعلیم بندو بست وکړي، دغه شان شیخ عبدالله هم خپلو بچو له دا بندوبست وکړو:

"د قاضي عبدالله یو شاګرد ؤ پائنده، د هغۀ پۀ پوهه اوپۀ علم د قاضي عبدالله ډېر اعتبار ؤ. دواړه ځامن ئې هغۀ ته حواله کړل چې د وخت او هغه علاقې مروج علوم ورته وښائي. بایزید به د هغۀ سره څه ناڅه لوستې وي[18]".

پۀ دې خبره کښې د روښاني ادب د ټولو محققینو هېڅ تردد او اختلاف نشته چې ګني بایزید باقاعده زده کړې نۀ دي کړې البته د ډېرو او لږو متعلق اختلاف موجود دے. خو د فاضل مقدمه نګار دا خبره چې" بایزید به د هغۀ سره څه ناڅه لوستې وي" دا د ډېرو خو لا پرېږده چې د لږو زده کړو پۀ باره کښې هم شکمن دے او پۀ دغه اتلسم نمر حواله کښې د "مروج " پۀ حاشیه کښې د حالنامې پۀ حواله د منیته المصلي او عمدة الاسلام ذکر کوي ، خو ښکاري داسې چې خپله ئې پرې زړۀ اوبۀ نۀ څښې. یار محمد مغموم صېب پۀ "روښانیان او پښتو ادب" کښې د فقهي مشهور کتابونو قدوري، او لباب الاخبار او د قرآن پاک د یو څو تفسیرونو د لوستلو او زده کړې ذکر کوي[19].

بایزید د حج او علم زیاتولو دپاره کوم چې د مېرې مور د ناکړدو او سکه پلار قاضي شیخ عبدالله د بې اعتنایې پۀ وجه نیمګړے پاتې ؤ، پوره کولو د پاره تلل غوښتل خو پلار ورته اجازه ورنۀکړه. دا واقعه قاسمي صېب داسې بیانوي:

"چې ځوان شو خپله(د علم) نیمګړتیا دۀ ته هم څرګنده شوه پۀ دے هم پوهه شو چې پۀ خپل کور کښې علم زده کول ګران دي. او دا به ئې هم خیال ؤ چې پۀ دې زړه لیکه تلل زما غوندې هوښیار او ذهین سره نۀ ښائي د پلار نه ئې اجازت ؤغوښتو چې ځم چې حج وکړم او که قیسمت مې وي نو بل چرته به هم دېره شم د علم تکمیل به هم وکړم. خو پلار ئې وئیل چې د حج دپاره توښه ضروري ده. چې خپل مال درسره نشته نو پۀ ګدا حج کول ثواب نۀ لري"[20]

د بایزید د حج واقعه یار محمد مغموم صېب داسې بیانوي:

"قاضي عبدالله د خلقو د تنازعو او مقدمو فېصله کولو او پېسو ګټلو د پاره د خپل ځان پهٔ شان د خپل ځوي بايزيد نه هم قاضي جوړول غوښتل مګر لکه بره چې ورته اشاره وشوه بايزيد پهٔ دغه ناسازګارو حالاتو کښې خپل تعليم جارې اونهٔ ساتلے شهٔ هغهٔ د حج کولو او تعليم حاصلولو اراده لرله مګر پلار ئې د داسې کولو اجازت ور نهٔ کړه هغهٔ به بايزيد ته وئيل چې،،تر څو زهٔ اجازت در نهٔ کړم ستا حج خدا ے نهٔ قبلوي،،"[21].

د بايزيد د علم متعلق عبدالاکبر خان اکبر پهٔ خپل کتاب "روښانيان د مغلو تاريکيان" کښې دا واقعه نقل کوي چې:

"بايزيد ابتدائي تعليم څه قدر د خپل پلارد يو شاګرد پائنده نه حاصل کړے ؤ، کورني مشکلات ئې ډير زيات ؤ۔ د خرڅ خوراک نه به هم تنګ ؤ. دپلارسلوک ور سره ښهٔ نهٔ ؤ۔ د کورني د مشکلاتو سره سره به هغهٔ د الله د قرب او معرفت علم حاصلولو کښې دومره محو ؤ چې د ځان بې خبرؤ، د اوچت ظاهري او باطني علم د حاصلولو دپاره هغهٔ دپلار ډېر منت اوکړو۔ولې هغهٔ ورله اجازت ور نهٔ کړو۔عبدالله هغه مغلي اولاد پهٔ مقابله کښې زيات شهرت او علم حاصل کړي۔هغه به ورله نهٔ د حج او نهٔ د علم دپاره د بل وطن ته اجازت ورکولو، د پلار ئې دا کوښښ ؤ۔ چې دے د فقهي علم اوکړي او چرته د حاکم پهٔ کور کښې قاضي شي بايزيد دي ته غاړه نهٔ کېښوده"[22].

د بايزد د پلار پهٔ وينا د علم نه د انکار وجه مغموم او اکبر صېب د بيان تر مخه د فقهي علم ؤ، بايزيد دغه علم حاصلول نهٔ غوښتل او د خوښې علم ته پلار د سفر اجازت نهٔ ورکؤو، نو بايزيد دغه د علم تنده ماتول غوښتل نو پهٔ دې وجه هغهٔ د سلوک لاره اختيار کړه چې هغه تنده ختم کړي او د الله خوشنودي حاصله کړي۔او د علم بنيادي مقصد هم دغه د الله رضا او خوشنودي ده۔

بايزيد د سلوک پهٔ لار د تګ د پاره باقاعده لاس نيوه چې پهٔ اصطلاح کښې ورته بيعت وائې د خپل تره شيخ خداداد د ځوي خواجه اسماعيل نه کول غوښتل خو پلارئې خوښهٔ نهٔ کړه۔ د خيرالبيان مقده نګار د بايزيد د بيعت د نهٔ کولو د پاره وجه د شيخ اسماعيل ګمراهي ګڼي[23]۔ خو عبدالاکبرخان اکبر داسې وائې چې پلار ورته دهمکي ورکړه چې که لاس نيوه دې اوکړه نو کور ته به دې نهٔ پرېږدمه[24]۔ خو مغموم صېب د شيخ عبدالله، بايزيد ته د لاس نيوې اجازت نهٔ ورکولو وجه دحالنامې پهٔ حواله د شيخ اسماعيل علمي درجه او پهٔ خلقو کښې د عزت او شهرت کمے پهٔ مقابله کښې د خپل ځان بيانوي[25]۔

دلته د شيخ عبدالله پهٔ شان يو علمي او عملي شخصيت پهٔ دې وجه خپل بچے د علم نه منع کوي چې د چا نه هغهٔ زدکړه کول غوارې هغهٔ د دهٔ نه پهٔ درجه او شهرت کښې کم دے۔پهٔ اخلاقي او ديني توګه درسته خبره نهٔ ښکارې۔

بايزيد چې کله د رياضتونو نه بعد د سلوک او اصلاح تلقين شروع کړو نو شروع ئې د خپل کور نه وکړه۔اول تلقين دخپلې طريقې ئې خپلې بې بې ته وکړو[26]۔ دا خبره قاسمي صېب ته نااشنا ښکارې چې بايزيد يو نااشنا کار وکړو او صرف پهٔ دې اکتفا نهٔ کوي بلکې د دې سره د نورو جدّتونو هم قائل دے چې د دهٔ پهٔ مريدانو کښې

د سرو سره سره ښځې هم شامل وې[27]. قاسمي صېب دلته دا نکته د بايزيد د کمزورۍ په توګه وړاندې کوي خو زما په خيال دا نه غلطه ،او نه نااشنا ده، بلکې د تصوف په تاريخ کښې داسې ډېر مثالونه موجود دي چې غټ مثال ئې شبکته البصريه ده چې په تصوف کښې د خپل ورور ملګرې وه[28]. نو په دې تناظر کښې دا څه رقم نوے جدّت نه دے.بله خبره چې فاضل مقدمه نګار پرې نيوکه کوې هغه د سماع متعلق چې د وخت علماؤ پرې د ګمراهۍ فتوې وې. خو بايزيد به وئيل چې ماته الهام شوے[29].دلته خالص پير روښان په دې ملامته کول ناانصافي ده ځکه چې دا اختلاف د علماؤ په مېنځ کښې موجود دے، او دې اختلاف ته شېر افضل بريکوټي هم په خپل کتاب " بايزيد انصاري پير روښان" کښې اشاره کړې ده[30].چې د علماؤيوه ډله ئې ناجائزه او بل ئې جائزه ګڼي. په صوفياو کښې سماع د خاص شرائطو سره جائز ده. او قاسمي صېب چې کومه خبره د بايزيد د الهام په حواله ذکر کړې چې سماع په درې قسمه ده ، حلال، حرام، او مباح، دا اقسام د سماع امام ابوحامد محمد الغزالي په "کيميائے سعادت" کښې هم ذکر کړي[31] نود کلام خلاصه دا ده چې سماع د علمائے تصوف په نزد ناجائز نه ده. خو پته نشته چې قاسمي صېب ولي دا خبره قابل ګرفت او موجب طنزګڼي؟ د دې خبرې نه داسې معلومېږي چې د الهامي دخل ذکر د دې طنز بنياد دے خو ولي الهام حق دے چې علماء ئې قائل دي البته د صريح حجت اود صريح شرک، غلو پکښې دواړه طرفېن کوي[32]. الهام د بل دپاره چونکې دليل نه شي جوړے دے او چاته چې شوے وي او د هغې مطابق هغه يو عمل اوکړي نو هغه پرې قابل ګرفت هم نه وي.

ګيان چند په خپل کتاب" تحقيق کافن" کښې د محقق په اوصافو کښې يو وصف دا ذکر کړے چې دے به غېر جانبدار وي[33]، خو دلته د مقدمه نګار غېر جانب داري په نظر نه راځي او ددې اندازه به د دې خبرې نه په اسانه ولګول شي:

"ټولو دپاسه زياتې خبره دا چې دۀ به وئيل چې يو زۀ او زما مريدان په سمه لار يو. زمونږ نه سېوا نور څوک چې دي هم ګمراه دي او هم د شرک په پليتۍ ابته دي"[34]

که د خېرالبيان مطالعه په غور وکړے شي نو داسې قسمه خبرې ترې نه ظاهرې کېږي چې ټول خلق مشرکان ګڼي. او شير افضل بريکوټي هم د قاضي خان سره په مکالمه کښې دا خبره ذکر کړې ده او هغه ترې انکار کړے البته دا خبره ئې کړې چې زه هادي يعني لارښود يم چې خلقوته د رسول صلي الله عليه وسلم علم او لارښائم او مريدانو ته د توحيد لار ورښکاره کوم اود ګمراهۍ او شرک نه ئې منع کولو کوښښ کومه[35].دې نه پسته دا خبره کول چې ټول مخلوق ئې داسې ګڼو بې بنياده خبره ده چې د جانبدارۍ شائبه ښکاره کوي. داسې قسمه اندازه، د مقدمه نګار د خبرو او اندز نه په دې مقدمه کښې ځاے په ځاے ډېره په اسانه کېږي.

د قاسمي صېب د ډېرو خبره سره اختلاف په خپل ځاے خو د بايزيد دا عمل چې پلار ته په حلقه کښې دشموليت کوم دعوت ورکړے د صوفياؤ د مزاج خلاف دے، ځکه چې د تصوف علم فرض او واجب نه دے چې دا رنګه تبليغ ئې وکړے شي. د بايزيد د طريقه کار سره اختلاف کېدے شي او محققينو کړے هم دے خو د هغۀ د کفر او الحاد او د اسماعليه نظرياتو متعلق چې کومې رائې قايم شوې هغه که د نوروکتابو نه علاوه صرف د خېرالبيان په تناظر کښې جائزه واغستلے شي نو هم دا ترې نه ثابتېږي. او غټ ثبوت د دې خبرې بل دا دے چې

که روښان کافر وے اود اسلام د صریح احکامو خلاف روان وے نو د وخت علماؤ به هغهٔ پهٔ مباحثه کښې ملامته کړےوے۔ خو چا هم داسې ونهٔ کړے شو۔ ځکه چې د هغهٔ سره کومې مباحثې شوې نو قاسمي صېب او افضل خان خټک ئې ذکر کړے دے۔ قاسمي صېب دا ذکر داسې کوي:

"تر دې چې ملایانو ورپسې ډلې راوستې مناظرې ئې ورسره کولې خو بایزید هوښیار سړے ؤ چا پهٔ بحث کښې غلے کولے نهٔ شو"[36]۔

او هم دا واقعه افضل خان پهٔ تاریخ مرصع کښې داسې ذکر کوي:

"پهٔ هر لو د هغه وخت علماؤ ته ځواب و سوال وؤ چې راځئ زهٔ پیر کامل یم تاسو به پهٔ مراتب اعلیٰ ورسوم۔ ځان ئې پهٔ پیر روښان مقلب کړ۔ شائد چې پهٔ هغه وخت اخون درویزه چې پهٔ هغه وخت لوے ملاهم دے وؤ راغے مباحثه ئې ورسره وکړه اما پهٔ هغه وخت غلبه د حکام هم پهٔ دا ملک نهٔ وه، معامله ئې سره فېصله نهٔ شوه" [37]

پهٔ مناظرو کښې د علماؤ د ناکامۍ بنیاد قاسمي صېب د بایزید هوښیارتیا او افضل خان د حکامو عدم غلبه ګڼي، چې پهٔ هېڅ جوړ درسته خبره نهٔ ده۔ ځکه که د حکامو غلبه نهٔ وه نو قاضي خان دے څنګه دربار ته حاضر کړو؟ د هغه وخت دعلماؤ پهٔ مباحثه کښې ناکامې د دې خبرې غمازي کوي چې روښان پهٔ علمي توګه مضبوط موقف درلود او د دلائلو پهٔ مېدان کښې د هغهٔ د مقابلې ثوک نهٔ وو۔ ځکه چې د عدم دلائلوپهٔ صورت کښې تش د هوښیارتیا پهٔ بنیاد ثوک د چا علمي موقف نهٔ شي بدلولے۔

دا مقدمه قاسمي صېب د یو محقق پهٔ طور وړاندې کوي خو پهٔ دې کښې دے ځاے پهٔ ځاے داسې غېر ضروي او طنزیه رائے[38] وړاندې کوي چې دمحقق منصب پرې مجروح کېږي خو د دې باوجود پهٔ مجموعي توګه دا مقدمه ډېره خوندوره او طویل ده۔ چې پکښې د بایزید د ژوند او جدوجهد پهٔ حواله ډېر ګټور او نادر معلومات ډېر پهٔ ساده او سېپڅلي انداز وړاندې کړې چې پکښې پهٔ بعضې ځایونو کښې د بعضې الفاظو لهجوي رعایت هم کړے شوے دے چې د بیان د ښکلا سبب جوړېږي

حواله جات

[1] : سحر یوسفزے، ادب څه دے، شعیب سنز منګوره سوات، کال ۲۰۲۱، ص ۱۱۲۔
[2] :کمال ،محمد اشرف، تنقید کادائره، نشنل بک فاونډېشن اسلام آباد ، کال ۲۰۲۰، ص ۱۵۔
[3] رضا ،محمد افضل، د پښتو د نثر تاریخ،یونیورستي بک ایجنسي پېښور ،چاپ دریم،کال ۲۰۱۳ ،ص۸۲۔
[4] : عبدلحیٔ حبیبي ،پوهاند ، د پښتو ادبیاتو تاریخ ،دوېم ټوک ، خپروندوي دانش خپرندویه ټولنه ،درېم چاپ ۱۳۹۸ال ۲۰۰۵ز، ص نمبر ۲۲۴۔
[5] :خټک، مغموم، یار محمد ، روښانیان او پښتوادب،پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱،ص۸۴او ۱۰۹ ۔
[6] : بایزیدانصاري ، خېرالبیان ، ترتیب و تدوین او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي ، دریم چاپ ۲۰۱۸، ص ۲۲،۲۵ ۔
[7] : خټک، مغموم، یار محمد ، روښانیان او پښتوادب،پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱،ص۲۹۴ ۔
[8] : هم دغه، ص ۲۹۵ ۔

[9] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸، ص۲۷.

[10] : هم دغه، ص هم دغه.

[11] : هم دغه، ص ۴۰.

[12] : طائر،محمدنواز، روهي ادب، پښتو اکېډمي پېښور، ايډيشن ندارد، کال ۲۰۲۰، ص۱۳۱.

[13] :ظفر، بهارد شاه ، سيد ، پشتون تاريخ کے آئينے ميں، يونيورسټي بک ايجنسي ،کال، ۱۹۸۱،ص ۴۸۸.

[14] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸، ص۳۹.

[15] : خټک، مغموم، يار محمد ، روښانيان او پښتوادب، پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱، ص ۱۱۳.

[16] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸، ص۴۱

[17] : WWW.darululom-deoband.com، جواب نمبر۱۹۷۵۵،فتوي(م):۳۴۵=۳۴۵-۳/۱۴۳۱.

[18] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸، ص۴۱.

[19] : خټک، مغموم، يار محمد ، روښانيان او پښتوادب، پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱، ص۱۱۹.

[20] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸،ص۴۲.

[21] : خټک، مغموم، يار محمد ، روښانيان او پښتوادب،پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱، ص۱۲۱.

[22] :اکبر خان ، عبدالاکبر،روښانيان د مغلو تاريکيان مقدمه او حواشي سيد شبر حسن شيراز، ناشر ادب محل سټي ټاور کابلي بازار پېښور،ص ۳۲.

[23] : خټک، مغموم، يار محمد ، روښانيان او پښتوادب، پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱، ص۴۴.

[24] : اکبر خان ، عبدالاکبر،روښانيان د مغلو تاريکيان مقدمه او حواشي سيد شبر حسن شيراز، ادب محل پېښور،ص ۳۲.

[25] : خټک، مغموم، يار محمد ، روښانيان او پښتوادب، پښتو اکېډمي پېښور، کال۲۰۱۱، ص۱۲۲.

[26] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸،ص۴۷.

[27] : همدغه

[28]: https://www.mukaalma.com/14793/ ، مجاوری، مفتی محمد مشتاق، صوفی خواتين کا ايک تذکره(۲۰۱۷.۱۲.۲)، بوقت ۱۲:۴۲،بتاريخ ۲۰۲۳.۰۳.۱۸

[29] : همدغه

[30] :بريکوټي،خان، شبر افضل ، بايزيد انصاري پير روخان، ملت ايجوکيشنل پرنټرز لاهور، ص ۲۴۴.

[31] : الغزالي،محمد ،ابوحامد ،کيميائے سعادت، مکتبه رحمانيه، سن اشاعت ندارد ،ص ۲۹۳تا ۲۹۷.

[32] : www.urduweb.org، کشف و الهام کي حقيقت، از حسيب احمد حسيب، بتاريخ، ۲۰۲۲.۱۲.۲۵، بوقت ۱:۳۰.

[33] : گيان چند ، تحقيق کافن، سيونتھ سکائي پبلکيشنز لاهور ،ص۳۸.

[34] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸،ص۴۷.

[35] : بريکوټي،خان، شبر افضل ، بايزيد انصاري پير روخان، ناشر،ملت ايجوکيشنل پرنټرز لاهور، ص۱۱۱.

[36] : بايزيدانصاري ، خيرالبيان ، ترتيب و تدوين او حواشي حافظ،عبدالقدوس قاسمي، پښتو اکېډمي پېښور يونيورسټي ، دريم چاپ ۲۰۱۸،ص۵۲.

[37] :افضل خان، تاريخ مرصع،يونيورسټي بک ايجنسي پېښور، ايډيشن ۵،ص ۲۹۱.

[38] : خټک، راج ولي شاه، د پښتو ادبي تحريکونه، پښتو اکېډمي پېښور، ايډيشن دويم ،ص ۷۷.